



# کندهار



په مزار شریف کې د شاه ولایتمآب مبارک روضه چې د افغانستان
د مقدسو او تاریخي ځایو څخه ده او د نوي کال د وړي په
لومړۍ ورځ سم له معمولو تشریفاتو سره د ګران هیواد
ډېرو خلکو په ګډون جنډه په کښې پورته کیږي
په پورتني عکس کې د جنډې د پورته کولو د مراسمو
یوه منظره لیدل کیږي

# کندهار




## د کندهار

### دمجلې پوولسم
### نشراتی کال

ځرنګه چې مطبوعات دخلکو د ذهنیت د روښانولو په لیاره کې مهم رول لري او د بشري جامعې دملي ارادو ښکارندوی بلل کیږي نو پدې اساس ویلاشو چې د دولت او خواري مشکل خنډونه پدې وسیله له منځه ځي د آینده باسعادته او مرفه ژوند لپاره زمینه مساعده

وي او هم د فضیلت نخښې په ټولنه کې پیدا کوي ځکه د اجتماعي عدالت د تامین په پلوشو کې خپله

تکاملي بڼه غوره کړي او هم له دغې لیارې هره ټولنه کولای شي چې د هر وخت او زمان د ایجاباتو سره سم د ژوندانه د سمون په غرض د خپل هیواد اقتصادي ،سیاسي او اجتماعي

چاري تقویه کړي او پرمخ ئې بوزي او همدا راز هغه ئیمګړ-

تیاوې چې په ټولنه کښې موجودې دي له دغې لیارې ځنې

اصلاح او جامعې ته د انکشاف پر لور حرکت ور کړي

زموږ ګران هیواد چې اوس د پرمختګ انکشافي سیر تعقیبوي او خپلې

نیمګړتیاوې د پوهې له لیاري د مټه په قدرت د

عصر د ایجاباتو سره سم بشپړوي او متبوعه حکومت

د هغو خاصو علایقو له مخې چې د هیوادوالو د ذهنیت د روښانه کولو سره ئې لري

نو ځکه ئې د هیواد ټولو د افکارو د تنویر په ملحوظه پدې لړموده کې په مرکز

او ولایاتو کښې د مجلو، اخبارو، جرائدو او نورو پاڼو

د خپرونو وزیاتوب ته خاصه توجه را ګرځولې ده .

د کندهار مجله چې د نوي کال په شروع سره خپل لسم «۱۰» نشراتي کال بشپړوي

او د دغې ګڼې په خپرولو

سره پخپل یوولسم نشریاتي کال پیل کوي اداري د خپل

وس په اندازه زیار ایستلی دی چې د ښاغلو لوستونکو لپاره په زړه پوري موضوعات

خپاره کړې خدای [ج] دې وکړي چې د مقتضی سره سم

مو د لوستونکو د ملي آرزوګانو د سرته رسولو

په لیاره کښې لږ او ډیر ارمانونه ترسره کړي وي تر دې وروسته بیا هم د

پرسونل د تکمیلیدو په صورت او د ښاغلو لیکوالو په

ملګرتیا او د ادب د خاوندانو د قلمي مرستې په ګډه کوښښ

سره هغه موضوعات چې د ژوندانه په شڼو کښې د

کندهار د مجلې د لوستونکو توجه جلبوی تهیه او خپاره کړو .

هغو ښاغلو لیکوالو ته چه تر اوسه پوري ئې زموږ سره

قلمي مرستې کړي دي کور ودانی وایو او خپل

د امتنان مراتب ددوی ته وړاندې کوو او د زیاتې قلمي همکاري هیله ئې کوو



د کندهار مجله د نوی کال د راتلو پــه مناسبت سره خپل گران
ټولواك معظم همایونی اعلیحضرت او د گران افغانستان
ولس ته د زړه له کومی مبارکی وړاندی کوی

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
مسئول مدیر: زلمی (بارک)

# کندهار

میاشتنۍ خپرونه
تاریخي، اجتماعي، علمي، ادبي
اداره: د شهیدانو واټ
د تاسیس کال ۱۳۳۹
د یوولسم کال لومړۍ ګڼه — ۱۳۴۹ لمریز کال
پرله پسې ګڼه ۱۱۵

کالنۍ بیه
په کندهار کې [۲۸] افغانۍ
د هېواد په داخل کې [۳۲]«
په بهرنیو هېوادو کې یو ډالر

## ددې ګڼې مضامین

## تقریظ

د لمر علمی ، أدبی او اجتماعی میاشتنی مجله چی د مطبوعاتی انکشافی بڅو ر پلان په سلسله کښی ئی د یوی ډلی پوهو لیکوالو تر کتنی لاندی د کال د نوی کیدو سره سم په خپریدو پیل کړی دی د مضامینو د غوره والی ، ثقافت او صحافت د مزایاو د لړ لو له حیثه د ډیری ستاینی وړ ده .

د کندهار مجله په مطبوعاتی نړی کښی د دې علمی مجلی خپریده یو د قدر وړ کار بولی او د کار کوونکو موفقیت ئی تر پایه پوری په همدغه ډول سره غواړی .

[أداره]

# له شعره څه غواړو؟

له کوم وخته چې وطن ته د علم او معارف د پراختیا له اثره فکري نهضت راغلی دی هر ځای او په هره ټولنه کې په زیاته پیمانه د پوهانو په مجلسونو کې ادبي او علمي څېړنې کېږي چې ډېر ځله یې علمي او معقولې نتیجې هم لاس ته راځي.

یو له هغو موضوعګانو څخه چې د پوهانو فکر یې ځانته راجلب کړی دی هغه د شعر او شاعرۍ موضوع ده.

موږ دلته د شاعرۍ د پیدایښت د څرنګوالي سره څه کار نلرو، ما د یوې خبرې ډول لازم ګڼو چې وو ایو شعر د زړه ترجمان او د نفسي هیجاناتو ښکارندوی دی او دا قریحه له کوم وخت راهیسې چې انسان په موجودیت صورت اوښولاسره د مځکې پرسر په ژوند پیل کړیدی ورسره ملګرې او د لارې مل ده.

د بشري ټولنو له مطالعې څخه دا حقیقت څرګندیږي چې د لومړنیو انسانانو په زمانه کې شعر یوازې او یوازې د باطني دردونو او نازکو احساساتو ښکارندوی د مینې او محبت قاصد د ښه یست او ښکلا خوراښه تصویر او مظهر و اما کله چې د ټولنو شیرازه ټینګه او اجتماعي قدرتونه منځ ته راغلل شعر او شاعرۍ خپله پخوانۍ ولوله او د خپلې اصلي مجرې او لارې لیکې څخه واوښت دلته شعر او شاعرۍ د شخصیت پرستۍ په دوک اخته شوه او د زور او طاقت د مقاصدو د پر مخ بیولو د پاره استعمال شوه د دې عصر د ادبیاتو د تاریخ د لوستلو څخه دا خبره ښکاره ده چې د نړۍ په ټولو هیوادونو کې په زیاته پیمانه په لمر ختیزه کښې شاعري د زرو په ښاینتو او لوړو ماڼیو کښې اسیره او استخدام وه. او لکه مقیده بلبله د خپل اصلي ټاټوبي د لیدو څخه محروم او بې نصیبه وه خو د زمانې د تیریدو او د اجتماعاتو د ترقۍ او تکامل سره سم شاعري هم وخت په وخت خپله پخوانۍ الیشه کړه او د تجدد او تحول تر ټولو د مخه په هغو هیوادونو کې پیل شو کوم چې د مخه د زمانې جرس بیداره کړل او په شرقي هیوادونو کښې څرنګه چې د ویښتوب روح لږ لیدل کیدی هغه وو چې د دوی د شاعرۍ زړې ماڼۍ نوی رنګ پیدا نه کړ او ادب یې د هغو دابرم له غولې څخه د حریت او انکشاف واورشو ته راشیوه نه شو همدا سبب دی چې اوسني متورین او د ادب نقادان د شرق شاعرۍ د ټولنو د ویښتوب او نهضت منافي او د انحطاط عامل بولي او د یوې داسې شاعرۍ د پیدا کیدو انتظار لري چې هغه ضمیر بیداره او عقول د ترقۍ او نهضت د پاره راوپاڅوي چې شاعري استعمال او له خپلې اصلي لارې څخه یې راواړوي او د اجتماعي ژوند تصویر او هنداره یې وګرزوي څرنګه چې د افکر ✡

ښاغلي ع - ن ترجمه:

# داسلامي عصر تاريخ يوه پاڼه

## په افغانستان کې

مسلمانانو د لمړي خليفه د خلافت په زمانه کې د خليج پارس و څنډو ته ورسيدله او د دوهم خليفه په زمانه کې ئې د پارس په ګرده پاستان ملك باندي بري پيدا کې يعني داسلام د مدنيت او مبارك دين په وړانګو سره ګرده خوراسان په دغه وخت کې وړانګن شو .

په درويشتم هجري کال کې عبدالله بن عمر (رض) پرسيستان باندي په يوه بريد سره بري پيدا کې او د دريم خليفه په زمانه کښې د پارس آخريني پاچهان په قتل ورسيدله بيا نو هرات او بلخ تاريخي ښارونه فتحه شوه پدې ځاى کښې د مسلمانو زيات مقاومت او د مقابلو طرفو د جنګ

د زيات اشتعال له حيثه څخه يوله دغولويو ښارو څخه و نړيدی .

په يو دير شم هجري کال کښې احنف بن قيس د قطغن وبد خشان ښارونه ونيوله

په څلور څلويښتم هجري کال کښې د کندهار فتح پاى ته ورسيدله اماد

✿ د جامعې د خير آو دانسانانو د ښو الي د پاره پيدا شوي دى نو ځکه موږ د شاعري د استعمال ښه او تر اصلي مجرائي خوندور او ګټور بولو .

خو زموږ په محيط کې ځيني داسي کسان هم شته چي هر شعر ته په سپکه ګوري يو له دې کسانو څخه زما يو محترم ملګري دی چي ټل شعر او شاعري غندی او ټولنې د انحطاط علت ئې بولي يو وخت ما ورته د ښه شعر تعريف وکړی او د هغه تر مزيتو وروسته مې د ښاغلي [رشاد] دا څو بيتونه ورته وويل :

خدايه ستا په ړ نګ جهان کې چي ودانې ښکلي دي
د معمار د لاس تړا کې د مزدور توديخولي دي
دا په بڼ کښې چي ګلونه بهارونه تری سازيږي
د باغوان د زړه په وينو آبياري مومي غوړيږي
مګر واك د بوټيد و ئې په قسمت د باغوان نشته
د غريب سړي تاتوبې ستا پر مځکه آسمان نه شته

ملګري په غور ګون کې راته وويل چي دا شعر نه دی حکمت دی . د دې ملګري په نظر کې شعر بايد د بشري ژوندا رمانجنه خوا وڅيړي او شاعر بايد داجتماع وتل ته ورننوزي او په ريښتنې ډول د هغه عکاسي وکړي يعني شاعر بايد سياست مصور وي او د ژوندانه پر ټولو اړخونو داسي وړانګي واچوي څو هر شي په خپل اصلي حالت او محل کښې ځان وښئي او خپله حقيقي ښه ښکاره کړاى سي .

څو تو پير د حق و باطل د تور و سپين د ښو او بدو شي . که چيري دا کار زموږ شاعر يا ليکوال وکړاى شي نو دا به د ده لو يه کاميابي او په خپل عصر کې ستر بريا ليتوب وي

او د هغه هيله ده چي موږ ئې د شاعر څخه لرو او زمانه د دې فکر استقبال کوي .

[ښاغلی ا-م کرزی]

د کابل اوسېدونکو ترا موی
زمانی پوری د اسلامی
لښکر په مقابل کی وءقاومت
ته دوام ورکی دلمړی هجری
پېړی په اواخیرو کی کاشغر
او ماوراالنهر فتح شو بیا نو
(۱۰۷) هجری کال کښی د
بلوچستان په نیولو پیل
وشو او ددې ناحیی ټولی
علاقی دخراسان په حکومت
پوری مربوطی شوی، دی

ادغام پر پښتنو باندی چی
طبعاً آزاد دی غوښتونکی
او د لوړو احساساتو لرونکی

دی بد تاثیر وکی او هری
خواته د بغاوت اور ونه بل
شوه له یوی خوا څخه ابرا
بلخی خلق و جنګ ته وپارول
له بلی خوا څخه فارن هراتی

او راتبیل کابلی د خپلو
خلقو په قیادت سره د بغاوت
علمو نه پورته کړه د غو

مناقشو دلمړی قرن تر نیمی
پوری دوام درلود څو په
پای کښی د عربو مرکزی
حکومت مجبور شو او د

مصلحت له مخی ئی د افغانستان
داخلی استقلال ماته یعنی
صرف ددوی د جزوی خراج
په ورکړه سره اکتفاء وکړه



دولایاتو د اطلاعاتو او کلتور مدیران د مطبوعاتو په وروستی سیمینار کی د کابل د موزیم د کتنی په وخت کی هغه لوی ټبرین د ږنګ کوری کوم چی د جلال الدین محمد په واسطه په ۹۱۹ کښی حکاکی شوی او د کندهار د زاړه ښار د نارنج د قصر له کنډوالو څخه چی د میرویس نیکه اوغلجی پاچهانو د حکومت مرکز وو پیدا شوی دی

---

مګر په عین حال کښی ئی د تبلیغو او د اسلام د مبارک دین د تشهیر سلسله جاری ساتله همدغه سبب و چی ډیر ژر پښتانه د بت پرستی له باطلو عقیدو او یا له نوهو موهو استبدادی افکارو څخه چی د حریت تحفظ په کښی نه ؤ را وګرزیدله او د توحید پر پاکه لار باندی رهی شوه دا نو هغه زمانه وه چی د امویانو د سلطنت کمبله ټوله شوی او عباسیان د پښتانه ابوالمسلم المروزی الخراسانی په کوښښ او میړانه سره د خلافت و تخت ته جګ شوی وه د دغه نامتو میړه د توری او دفاع تاثیر و چی د عباسی تولو رکانو پر پښتنو باندی بشپړ اعتماد پیدا شو او دوی ته ئی د بغدادیانو نورو ځایو په لښکرو کی لوړ منصبونه ورکړه چنانچه د بلخ د برامکه ؤ لوړ خدمتونه او جګی چوکی

زمادې مدعا ښکاره مثال دی که څه هم ایرانیان ئی د ځان د کورنی وځانو ته منسوبوی مګر حقیقت داسی نه دی دوی اصلاً د بلخ پښتانه وه چی اوس هم دغه ښار د افغانستان په سیاسی حدودو کی شمولیت لری بل

سړی چې برته له ابو المسلم مروزی ځخه د پښتنو یا عربو په تاریخ کی لوړ مقام او حیثیت لری طاهر فوشنجی دی چې د منصور له خوا ځخه د خراسان والی ؤ او بیایی په کورنی کښی داد نده میراثی شوله ـ وایی دی لوړ شخصیت د خپل ډیر نفوذ او اطمنان په اثر دومره

تر دې اندازې پوری اقتدار پیدا کی چې د خلیفه نوم ئې په ښکاره ډول سره د جمعې د ورځی له خطبې ځخه وویست او ځانته ئې دیره مستقل حکومت ډ ماده وځ نکوله چې د غه استقلال او امیر توب ئې تر ډیری زمانی پوری په کورنی کښی باد وامه پاته شو چې نامی به ئې بیان په مجمل صورت سره په لاندیو کرښو کښی ولولی .

## ((۱)) طاهر یانو کورنی

دې کورنی د خپلی پاچهی په زمانه کی چې ۲۰۵ هجری سنې ځخه ئې بیا تر ۲۴۹ هجری سنې پوری دوام درلودی د اسلام د مدنیت او دین د تشهیر په لار کی داسی ستر خدمتونه و کړه چې توصیف ئې زمامات قلم او د تاریخ پاڼی نشی کولای د پاچهانو نومونه ئې دادی:

[۱] طاهر بن حسن په ۲۰۵ هجری سنه کی ټولواک ؤ .
[۲] طلحه بن طاهر په ۲۰۷ هجری سنه کی ټولواک ؤ .
[۳] عبد الله بن طاهر په ۲۱۳ هجری سنه کی ټولواک ؤ .
[۴] طاهر بن عبدالله په ۲۴۰ هجری سنه کی ټولواک ؤ .
[۵] محمد بن طاهر تر ۲۴۸ هجری سنې پوری حکمرانی و کړه .

## ((۲)) د صفاریانو کورنی

صفاریان چې اصلا د پښتنی سیستان او سیدونکی وه له ۲۵۴ هجری سنې ځخه ئې بیا تر ۲۹۱ هجری سنې پوری په خراسان ښې یو مقتدر حکومت چې مشتمل پر خود سیستان، زابلستان ، کابلستان، بلخ تخارستان، او سنی خراسان، کرمان طبرستان او خوزستان باندی ؤ

تشکیل کی دا کورنی د اسلام د دین او مدنیت په خپرونه کښی د طاهریانو تر کورنی کمه نه وه د دریمې هجری پیړی په اواخرو کی ئې خپل اماکن و خپلو بلخی وروڼو ته چې د سامانیانو په نامه سره یادیدله پریښوله د پاچهانو نومونه او د سلطنت تاریخونه ئې دادی:

[۱] یعقوب بن لیث چې په ۲۵۴ هجری سنه کی پاچا ؤ

[۲] عمر لیث چې په ۲۶۵ هجری سنه کښی پاچا ؤ .

[۳] طاهر بن محمد عمر چې له ۲۷۸ هجری سنې ځخه ئې بیا ۲۹۱ هجری سنې پوری حکومت قایم وو .

## د سامانیانو کورنی

سامانیانو له ۲۹۵ هجری سنې ځخه پاچهی و کړه د

کورنی مشر ئې اسد بن سامان نومیدی چې له سامون سره په مروه کښی نوکر ؤ کله چې ئې نوموړی بادار

وروسته د پلار تر مرګ وپاچهی ته ورسیدی نو دی

ئې د خراسان حاکم کړ پس له مرګه ځخه ئې ورور اسماعیل

نومی په بخارا کی د خپل حکومت جنډې پورته کړه او له سی لفر نومی ئې وروسته

ترېر غل او تسلط د ماوراالنهر په سمرقند کی د پاچهی اعلان و کی خو بد بختانه چې ژر مرګ پرړ اهله کړه

اوده د حکومت واگی هم اسماعیل په خپل لاس کښی واخیستلی بیائی نو خپل ځان د سلطان په لقب سره وخلقو ته معرفی کی گویا لدی ځایه څخه ددې کورنی

د پاچهی سلسله شروع کیږی او د څلورم هجری قرن تر پایه پوری ئی دوام پیدا کړی پس له هغی څخه ئی بیا د لاسه وزی او ملك ئی پر

دوو حصو باندی تقسیمیږی پر ماوراالنهر باندی ایلك خانان سلطه پیدا کوی نوره

جزوی برخه ئی پارس او کلی ئی واففانستان ته په تقسیم کښی رسیږی چی د غزنویانو حکومت پر هغه

باندی قیام پیدا کوی آخیرنی پاچا د سامانیانو عبد الملك ثانی نومیدی

چی په ۸[illegible] هجری سنه کښی ئی پاچهی وکړه ٠

# ٤- د غزنویانو

## کورنی

اساس د دې سلطنت الپتگین نومی چی د مخه آردی په بلاطکی د سامانیانو له طرفه والی ؤ ایښی دی د

امیر نوح سامانی په زمانه کښی ودغه شخص ته د دفاع در ئیس لوړ لقب ورکړه شو او مقرداستوگنی

ئی نیشاپور شو، وانی د وظیفی په دوران کښی د ده د پاچهی خیالونه

په سر کی درلوده په همداغه اساس سره په ۲۵٦ هجری سنه کی

له خپل اصلی ځایه څخه راغی او په غزنی کی ئی د مستقل سلطنت بنیاد کښیښود خو هغه هم دومره مهلت ورنه کی او خوراژر ئی

پر راهله کړه پر ځای باندی سبکتگین نومی زوم کښیښستی او

ده طرح کړی نقشه ئی په خپلو فتو حاتو کښی پرمخ بو تله په

بیخی چټکی سره ئی پر کابل او

دهغه پرشاو خوا علاقو باندی بشپړ تسلط او اقتدار پیدا کړی په دې وخت کی ئی له یوی نجیبې

کورنی څخه یوه ښکلی نجلی په نکاح کړه چی د افغانستان

مشهور فاتح سلطان محمود غزنوی ور څخه پیدا شو او وروسته

د سبکتگین تر مرگ ئی د پاچهی واکی په لاس کښی واخیستلی

دی مدبر قاید او زړه ورزلمی په خپله مدبرانه آوری سره د



سلطان محمود غزنوی

جیحون له سیند څخه بیا د عمان تر بحیری پوری او خوارزم له ملکه څخه بیا تر هندو لیر علاقو پوری ملك

پراخ او د اسلام مبارك دین ئی خپور کی، د سومنات فتح ئی له هغو فتوحاتو څخه ده چی په تاریخ کښی نظیر نه لری ٠

# ٥- د غوریانو

## پاچهی

غوریان هغه قدیم قوم د پښتنو دی چی د فیروز کوه په شیلو کښی ئی د ملوك الطوايفی په صورت سره حکومت کاوه او تر پایه پوری د غزنویانو ته ایل نه شوه ٠



سلطان غیاث الدین غوری

[ علاوالدین غوری سره له لښکر ناځاپه پرغزنی باندی برید وکی مګر په لومړی ګلا کښی کامیا به نشو او په دوهمه ګلا کښی ای ټوله غزنی قبضه اود غزنویانو مقتدر حکومت ته ئی ماتهورکړه پسله هغی څخه ئی تودهند په حملو پیل وکی په لمړی ګلا کښی ئی پایتخت فیروزکوه بیا ئی وډهلی او لاهور ته نقل کی د حکومت په آخرینو څپ - څپاندو ورځو کښی یی ملك پر د وحصو باندی وویشل شو اودهند حکومت له افغانستان څخه پرمخ ټوله اوداسلام مبارك دین بشپړ تعمیم پیدا کی د باختری هروی او سانسکریتی ژبی پرځای عربی ژبه ترویج اومعمول شوه تعلیم او تعلم یی اصلی غایه د ژوند وګرزیدله خورا ډیر کتابونه د پښتنو هو لیغنو له خوا په کښی ولیکل شوه چی موږیی دخپلی مدعا دثبوت په ملحوظ نو مونه دلته ستاسی لپاره لیکو :

[۱] حکیم ابو نصر فارابی
[۲] بوعلی سینا بلخی [۳] العلامه البیرونی [۴] عالم الفلك ابو معشر بلخی [۵] الحکیم ناصر خسرو بلخی
[٦] امام اعظم ابو حنیفه کابلی
[۷] الامام احمد حنبل المروی
[۸] مولوی جلال الدین بلخی [۹] سنائی غزنوی [۱۰] خواجه عبدالله انصاری الهروی [۱۱] عمر الخیام الکردی [۱۲] عبدالملك الجوینی ۱۳ الامام احمد الغزالی [۱۴] الامام محمد الغزالی [۱۵] ابو الفتح بستی (۱٦) احمد میمندی . (پای)

د «انورزی» ژباره

دباندنیو منابعو نه

# یوولس تاریخی پیښی دنړی په یوولسو ښارونه کی

۱: دبغداد په ښار (عراق) کی دعباسیانو خلافت دهلاکوخان له خوا دمنځه ولاړ په «٦٥٦» هجری

۲: دفیلادلفیا په ښار (امریکا) کی دمتحده ایالاتو اساسی قانون تصویب شو (۱۷۸۷) میلادی .

۳ : دمیلان په ښار کی «ایټالیا» کی دعیسوی دین دقسطنطین رومی امپراطور په فرمان آزاد او رسمی سو «۳۱۳» میلادی

۴ : دپاریس په ښار «فرانسه» کی ناپلیون بناپارت دفرانسی امپراطوری ته ورسید (۱۸۰۴) میلادی

۵: دتبریز په ښار «ایران» کی شاه اسمعیل صفوی دصفویانو تاریخی سلسله تاسیس «۹۰۷» هجری

٦: دقسطنطنیی په ښار کی (ترکیه) کی دشرقی روم دولت دعثمانی فاتح امپراطور سلطان محمد لخوا دمنځه لاړ «۴۵۳» میلادی .

۷: دلندن په ښار «انګلستان» کی دانګلستان دمشروطیت قانون منځ ته راغی (۱۲۱۵) میلادی .

۸ : دماسکو په ښار (روسیه) کی دناپلیون بناپارت دماتی دپاره نوموړی ښار ته دروسانو لخوا اورواچول شو (۱۸۱۲) میلادی .

۹: دهیروشیما په ښار (جاپان) کی دجاپان دماتی دپاره لومړی اتمی بم استعمال شو ۱۹۴۴ میلادی

۱۰ دډهلی په ښار (هندوستان) کی هندی محمد شاه دسلطنت تاج د نادرشاه افشار ته سوغات ورکړ ۱۱۵۱ هجری

۱۱: دسانفرانسیسکو په ښار (امریکا) کښی دملګرو ملتو نمایندګانو د لومړی ځل دپاره سره غونډه په بین المللی دغونډی په ګوره کښی افتتاح سوه . او پدی ترتیب دملګرو ملتو موسسه منځ ته راغله (۱۹۴۵) میلادی

دالمقتطف عربی مجلی څخه

دښاغلی نجیب ترجمه

# دهیکل په وره کی



اوس په حقیقت سره زماشو نډان په مقدس اورسره پاك شوه ولی چی د حب خبری می پر خوله باندی نه راځی او بل دوازیدو په حال کی ئی ځان ګونګ راته ایسی آیا ناسی د حب آرپیژندنی وهاندی او یاد هغه سړی په دول چی نغمی ئی دخبرکی په ځیر سره وی او د چول وهلی تړی غوندی ئی الفاظو تحول میندلی وی دوینا او د رڅ کړی دی؟

ای خلقو زما څخه د حب دعها ئیبو او غریبو نورحال مه پښتی ولی چی دسختیو هار ئی زما په غاړه کی یووار لو بدلی او دباطنی اور تو بش ئی سینه راسوی دوزه ستاسی څخه د هغه چا څرك غواړم چی په حب کی راسره برابروی چی زه ده ته اودی ماته زړه راښکاره کی هلی ژر کوی ده ځ لمبی په حقیقت هی بوه کی دا څرنګه لمبه ده چی دسینی په اعماقو کی ټولی قواوی سوځی پاڅیدلی د هیکل امیال له یوه مخه څخه وېلهوی دا څرنګه قوی لاس دی چی سړی ئی نه وینی مګر دی د لذت په تلخګی او یا دحلاوت په دردسره ګډ شوی شراب دکبد په کومی کښی تویوی او په دغه مرموزه قوه سره په سینه کښی روح له بدن څخه کاږی دا څرنګه پسرور وزرونه دی چی دشپی په تروږمه اودخوب په چو پایی کښی دخوب دځای پر چاد پېر باندی سر پول کیږی مګر دستر ګو خلاصولو په حال کښی ئی بیا پته نه وی سبحان الله دا څرنګه قوه ده چی مفکر ئی نسی فهمو لای نه ئی پوندلیدلای او نه یی شنوانځو پلای شی وتاسی ته دی دامعلومه وی چی دحب د قوی لغتی وهونکی دهغه آه کـونکی ویرجن په ځیرسره دی چی نسبت وخوښی ته یی خفګان خوښوی یعنی وغیرمرئی قوی ته ځان سپاروونکی وی مری او ژوندی کیږی تر هغو پوری مری چی پرسجار کیږی او دلمر په پړانګو کښی دهغه وچ ستر ګی بی جسد کالبد سره ښوری او دخوب لیدو وخیالو ته میل کوی.

ای دحب دعوه کوونکو مادحب په پټ راز سره خبر کی؟ دا څرنګه سر دی چی وشاته می پټ ښوری او نی وینم مګر په سل کی سل دارانـه معلوده چی دوجود په ضمیر کی می ځای لری؟ دا څرنګه یو منظم فکردی دټولو نتیجو سبب او یا په بل عبارت دټولو اسبابو نتیجه ده دا څرنګه وینوالی دی چی دژوندانه مرګ له تناول څخه یی حلم پیدا کیږی چی اغرب تر ژوندانه او اعمق تر مرګ دی ای خلقو ماخبر کی په تاسی کی هغه څوك شته تر هغو پوری چی یې حب په خپلو ګوتو سره روح مسح نه کی دژوندانه خوب څخه نه وینیږی.

رانه وواباست په تاسی کی به داسی څوك پیدا شی چی د کومی ښځی د ملاقات په غرض یی د روح په سلاسره د بحر وغرو او بیابانو او ځنګلونو طی کړی دی ای ځوانه خپل نفس مه بنده وه خدای ستا زاری آروی او لمونځ دی قبلوی ولی چی حب او اخلاص ده ده په باره کی ډیر قیمت لری.

ښاغلی [ایوبزی]

# طبابت د انسانانو




لمړی انسانان که څه هم د غرو په غاروکی او سیدل او ژوند یی ډیر ابتدایی ؤ خو بیاهم د ناجوړیو څخه په امان نه وو .

په هغه وخت کی لکه د دوی ژوند هر څه ابتدائی اوپه اوله مرحله کی وه طب

اوډاکتری هیڅ نه پیژندله اونه چا داخیال او تصور کاوه چی کومه ناجوړی سته ، بلکی هغو به هر څه

یو دم قدرت ته حواله کول اوویل بی چی دغه ناجوړی هم لکه باد باران ، ژلی

واوری دلوړی خوا څخه پر انسانانو اوری . یعنی دیته ئی هیڅکله فکر نه کیده چی د دغه ناجوړی علت

څه شی او څله انسان ناروغه کیږی اوبیا د ناروغی په وخت کی انسان ته څه پیښیږی خوکله چی انسانان دغرو څخه

راووتل اوژوند ته ئی لږ څه تغیر ورکړ نو بیا فکری حالت ئی هم بدل شو خو نه داچی هر څه د علت او معلول په عینکو کی وګوری .

داځل انسان بیاهم هر څه قدرت ته حواله کول خو په لږ تغیر پدې معنی چی که ناجوړی

وی که بلا او مصیبت یا زلزلی او نور ټول یی ددې څخه بلل چی هغه ئی د خپلو ګناهو او بدو کارو نتیجه ده .

مونږ د تاریخ له رویه دغه حقیقت داسی څرګندوو چی پدغه دوره کی چی انسان ته به کومه

ناروغی پیښه شوه هغه یی دخپلو ګناهو څخه بلل او تصورئی کاوه چی ارواح خبیثه یی په دماغ ننوتلی اوسړی ته آزار ورکوی

نو ددې لپاره چی هغه «بدارواح» یی له دماغه څخه راوباسی سړیی ورسوری کاوه پدغه حال کی به ناروغه یا لیونی یامړ شو ، پوهانو چی ددغه دورې

د انسانانو کوم سرونه او مړه بدنونه پیدا کړل ویی لیدل چی دهغو ډیری کلی غاروی پدې ډول ډیر کسان د بشر د نا پوهی او بی تجربګی

په سبب د رازراز ناروغیو په منګلو کی مړه او ]نابود شول .

خو کله چه دیوې خوا په نړیه کی لومړی ادیان منځ ته راغلل دغوادیانو او د بلی خوا انسانان طبعی فشارو ،

آفتو او ناروغیو دې ته مجبور کړل چی دهغو علت ولټوی او یایی د اصلاح کیدو په سدد کی شی .

په دغه حالت کی طب خپله لومړنی مرحله تیرو له ځکه چی وسایل او اسباب نه وه نو به خلکو او مذهبی

کسانو به دم ؤ چوف کاوه او پدی ډول یی د بشر دغه د ناروغی له لاسه ناآرامه روح



دقبایلو مستقل رئیس ښاغلی سیدمسعود پوهنیار دسپین بولدک دنوی روغتون دودانۍ دبنسټ ایښودلو وروسته په داسی حال کی چی دکندهاروالی ښاغلی محمدصدیق پوشه‌یر پښتونستانیان او دهغه‌ولسوالی مخورحاضر دی په دغه‌باب بیانیه ورکوی



د قبایلو ښاغلی مستقل رئیس په سپین بولدک کی د پښتونستانی ورڼو دپاره دنوی روغتون د ودانۍ د بنسټ ډبره ږدی

ورمطمئن کاوه‌وایی چی دابن سینا په‌وخت کی چی هغه‌داسلام یو لوی فیلسوف اوستر طبیب ؤ یو څو کښ ده‌ته راغی او دخپلی ناروغی څخه ئی شکایت ورته‌وکی په‌دغه‌حال کی دبوعلی سیناسره یو لوی روحانی شخص ناستؤ هغه سمدستی دناروغ پرسردم وکی مګر ابن سینا ورته په‌قهر شو اووی‌ویل ددې سړی ژر په‌ښوررا غلی دی او ته‌دم پر کوی بایدچی‌داسی شی ور کی چی صفرا ژر ئی ور آرام کی هغه سړی‌دی فیلسوف او طیب ته‌یوه‌ډیره بده‌او سخته‌خبره وکړه، چی ابن سیناډیر خفه شو، نو بیاهغه لوی‌سړی ورته‌وویل چی ته‌زما په‌یوه‌جزئی خبره ژر خفه‌شوی ما پرده‌باندی دخدای[ج] نوم‌ووایه اوچوف می‌پروکی آیا هغه‌تاثیر نه‌کوی؟

هغه‌ؤچی دیوی‌خوا مذهب انسانانو ته داجازه ور کړه چی دناروغیو دایسته کیدواودرمل دپاره دوا په‌کار واچوی، اودبل پلوه پوهان اوطبیبان پیدا شول چی دناروغانو علاج ئی په بیلو بیلو طریقو اوداروسره کاوه.

څو کاله چی په نړی کی پوهنه پر مخ ولاړه څکه‌چی انسانان تل د ناروغی له سرنوشت سره مخامخ وه دی ته‌ئی زیاته توجه وکړه اوسم‌ورسره طب او ډاکټری هم شروع وکړه.

اوس ډاکټری ډیری لوړی مرحلی ته‌رسیدلی ده اوسنی طب د انسان پر ټوله بدن او په ټولو غړو، رګو اونوروډ انغیو اعضاؤ باندی اقتدار پیدا کړی او ډیر لوی

عملیات بی له کوم اوضرر څخه اجرا کوی او س انسان ته د ثابته شوه چی هر څه چی په دنیا کی پاك خدای[ج] کوی هغه معلول په علتو سره دی بی له کوم علت څخه هیڅ شی نه کیږی که داسی نه وای نو ولی پاك خدای د نر او ښځی دیو ځای کیدو څخه د نسل د بقا سلسله قایمه کړیده او ځله انسانان پرته له یو ځای کیدو او ازدواج څخه نه پیدا کوی .

د بلی خوا او سنیو انسانانو دهری ناروغی علت پیدا او هم بی دهغی دعلاج د پار مؤثره دوا کشف کړه او س هم پوهان پدی لاره کی لګیا دی او هره ورځ د نړیه د بیلو بیلو هیوادو په زرهاو ډاکتران او طب پوهان په لابراتوارو او دواخانو کی په تجربو او علمی تحقیقاتو اخته دی چی په دغه باره کی نوی څیړنی او کشفیات و کړی د طب اوسنی پوهان دی حقیقت ته رسیدلی دی چی بالاخره انسان هغه وخت کولای شی چی

د ناروغیو څخه په امان سی چی دخوراك، چښلو نورو شیانو سره احتیاط وکی یعنی اوس یی وقایوی طب ته توجه واړوله اوداشی ئې زیات مؤثروګا ڼه پخوا به دوی ډیره توجه علاج ته کوله چی هغه ته معالجوی طب وایی خو او س ډیر کوښښ پدی کی کوی چی د ناروغ حمایه د خوراك او چښلو درژیم په اصلاح کولو او نورو داډول صحی شرایطو سره وکی .

دانسان د ناروغی اصل علت په خپله دهغه ناروغ په خوراك، چښلو او نورو شیانو کی دده بی احتیاطی او بی پروائی ده که نه څوك چی احتیاط کوی او دقرآن شریف په آیت شریف عمل وکی چی تاسو خوراك او چښنګ کوی مګر اسراف مه کوی هیڅکله به ناروغه نه شی . (پای)

# ریالیزم

دادبی نقطه نظره یوداسی سیستم دی چی دهغه په مطابق طبیعت څرنګه چی دی او یا څرنګه چی ئې لیدلای شی دهغو لوقیافو او فضلتو نو وستایلی شی .

په ادبیاتو کی دریالیزم مکتب د ۱۸۵۰ څخه په فرانسه کی شروع شوی دی ددې مکتب پیروان معتقدوه چی هنر او ادبیات د مستقیمی مشاهدی د لیاری څخه مطالعه شی او دواقعاتو د کامل پر بیان مشتمل وی .

په تیاتر او صحنه کی ریالیزم د الکزاندر ډوما په واسطه راغی .

ریالیزم په حقیقت کی لومړی ځل د ادبیاتو د حصی څخه شروع نه شو بلکه لومړی په نقاشی کی د «کوستاه» او «کوربه» په توسط پیدا شو او معتقدوه چی هنر دهنر د پاره یو یو چی بی معنی کلمه ده.

دغه مکتب تر ټولو پدی مهم دی چی د رومانو نو او نورادبیاتو اساس ئې پردی اینودشوی دی اما د ۱۹ پیړی په نیمائی کی یوه ډله لیکوال پیدا شول چی دریالیزم څخه ئې مخه وګرزوله او د رومانتیك جنبی ئې ځینی وغور ځولی او زیار ئې

ایستی چی تجربوی اصول او علمی لاره په ادبیاتو کی پیدا کی نو ځکه افراطی مکتب د ناتوریزم په نامه راووت .

دبناغلی [س] ژباړه

دهار وني ترجمه:

زموږ د نوي کال په مناسبت

# د نړۍ په مختلفو اولسو کې چې کال نوی سي دوی څه کوي؟



معروف او مشهور ګل (لوټس) بهٔ ئې چې په مصر کې ډېر محبوب بیت لري ور تقدیم کې داوخت که به د نجلی هم د ځوان څخه ښه راغله نو د مثبت جواب په معنی به ئې د خپلو هغو ګلانو څخه چې په کاکل کې بهٔ ئې وهلی وه یوه دانه راوا خیستل او د ځوان په لاس کې بهٔ ئې ور کې که به د ښځې ځوان

د جهان ځینو اولسونه د نوي کال د هغو جشنو او اخترو په مناسبت چې دوی ئې مراسم پر ځای کوي ډېر خوندوري برخې لري .

راسي چې ځان په یوه کړو او ددوی ددې مراسمو سره آشنائي پیدا کړو :

د ااخترونه په ډېرو ولسو کې د ځوان هلکانو او پېغلې نجلیو د ازدواج واقعات هم منځ ته راوړي چې ددې جهته و ځوانې طبقې ته حقیقتاً دا اختر د خوشحالۍ ورځ دی دادنوی کال مراسم او ازدواج څه قدیمې ریښې هم لري مثلاً پخوانی مصر یانو کال پر دوو لسو میاشتو تقسیم کې او هره میاشت ئې دیرش ورځې وشمېرل پنځه ورځې ئې نوری د کال په پای کې ور اضافه کړې.

د پسرلی لومړی ورځ ئې د هوا داعتدال په نسبت د کال لومړۍ ورځ وټاکل نو (فرعونانو) به د پسرلي لومړی ورځ جشن جوړاوه پدغه ورځ به دلمر راختلو دمخه له کورو راوتل ګلان او خوشبوئیه بوټي به ئې د ځان سره را اخیستل د دوستانو او متعلقینو لیدو ته به سره ور تله سازو آوازو به هم کیدی. بیا ئې داد کال لومړی ورځ د (نجونو اختر) و باله د مصر غټو نجونو به ددې اختر دمخه ښه کالي او د ښکلا سامان ځان ته برابراوه پدغه ورځ به ئې دا کالي واغوستل د زینت سامان به ئې په ځان پوري کې او عطر به ئې ووهل داختر په لومړي سهار به د ښار و یوه لوی ډګر ته ولاړې هلته به دمخه د ښار ځوانان صفونه تړلي ولاړوه په یوه عالم آرزو ګانو به ئې و خپلو نجونو ته کتل . دوی له منځه به هر چا ځانته نجلۍ ټاکل .

د کوم ځوان چې به یوه نجلۍ خوښه سوه دهغه برابری ته به د احترام په رسم کوږ ودریدی او د عاشقانه تعظیم به ئې و کې او هغه

نه‌ؤخوبن نو هغه د ځوان دلاس گل (لوتس) به‌ئی په ډیر عزت ورمسترد کی.

په‌دې حصه کی چی د لمر دراختلو دمخه به د کوره وتل ددوی عقیده‌داسی‌وه چی که‌لمر په‌خپلو کورو

کی پرراختلی وای نو به‌ټوله کال کی به بیامریضان تمبل اومړاوی‌وای.

(آیرول) په‌اتریش کی یوه غرنی سیمه ده ددې ځای خلک عقیده لری چی ایکمرغی د کال دنوی کیدو

سره د دوی د وړوکو ماشومانو په لاسو سره پر دوی ویشل کیږی.

داختر په‌لومړی سهار ماشومان په‌ډلوډلوله‌خپله کوره‌وزی اوپه‌نورو کورو ننوزی هلته د مرغانو د

کوډلواود نوروحیواناتو داستوګنی وځای‌ته‌ورځی پروړو، او ربشی، څه

معطروابنه اومیده‌ډوډیه وحیواناتو ته‌ورکوی لدې وروسته‌باغواوکښتوته‌وزی ددرختو په‌ښاخو اونورو

بوټو پوری رنګ رنګ رښکی تړی‌اوپه‌ځکه‌کی څه د غله‌جاتو تخمونه ایږدی پسله دې بیرته د کور خواته رهی کیږی هلته‌ئی مشران د اختر په

مبارکی کی څه شیرنی او نور خوراکی ؤدبازیوشیان ورکوی. ددې خلکو عقیده‌ده چی د

وړوکو په توسط ددی مراسمو پرځای کول دانتیجه لری: حیوانات بی دبدوستر کو په‌امان وی–مرغان به‌ئی ډیری هګۍ‌واچوی، درختی

به ئی ډیری میوې وکی فرضاً که دا مراسم د یوی پیښی په وجه پرځای نسی نودوی وائی چی

خدای[ج] راته په‌قهر شویدی له‌هغه‌وروسته په کلیساؤ کی سره ټولیږی او په عبادتو مشغو له شی چی خدای ترګناهوور تیرسی

په(ارمنستان) کی‌د نوی کال دنوی کیدو سره د هغه ځای پیغلی نجونی دقدیم‌عادت پر

اساس‌دځلمی میړه‌په‌تلاښ پسی راوزی هغه یو مرغه چی ملاچرګک ته‌ورته دی دوی ئی (شوکا) بولی په سوریه ؤلینان

کی ئی (شوحه) بولی د کال پدې اختر کی چی‌ددوی د کور پر سر تیریږی یائی د کور پسر بامـو کښېنی پیغلی نجونی یـوډول

مخصوصه شیرینی د اختر یوه‌شپه دمخه په‌خپلو لاسو جوړوی‌اود‌اختر په‌لومړی

سهار ئی پر بام ایږدی او پخپله نجلۍ په‌یوه گوښه کی پټیږی.

(شوکا) چی ددې‌شیرینی سره علاقه هم‌لری په‌سیلو سیلو راځی اوددوی‌د کورو پرسر گرزی – آخر ددې

شیرینۍ دپاره‌پر بام کښېنی اوداخستلو په‌مسابقه پیل کوی څوپه‌دوی کی یوموفق

شی‌او شیرینی په مشو که کی واخلی د (شوکا) نیت وی چی شیرینی پردغه‌بام نوش‌جان کی‌خو نجلۍ د

هغه پټ‌ځای څخه‌ورو ځغلی او (شوکاګان) په هـوا والوزوی داوخت دنجلۍ

زړه‌په‌ریږدکی شی ځکه که شوکالیری الوته و کړی خصوصاً دافق خواته‌دنجلۍ عقیده ده چی دایو کال

میړه نسی‌پیدا کولای او که (شوکا) دهمسایه ګانو پر بام کښېنوست یادئی ددوی د کور پر سرګرزیدی‌نو په همدغه کال به‌دامیړه پیداکی

او نیکمرغه به وی .

د (سیلون) خلک د کال لومړۍ ورځ (آفوروزومنګالیا) بولی دا ورځ د دوی د پاره دینی ورځ هم ده کوم مراسم چی لری هغه پدې ډول دی :

داختر یا د کال پدالومړۍ ورځ یو کوچنی فیل چی (مقدس فیل ئی بولی) راروان کی ـ او په زرو خلک پداسی حال کی چی رنګ رنګ

کالی ئی اغوستی وی (ډول وسورنا) ورسره وی تر شا پسی ځی ښځو په مخصوص لباسو کی ځانونه اچولی دایښلو او اتڼ په حال کی ورسره ملګری وی ـ د! فیل او د ده ورسره خلک

پر ځینو ځایو دریږی او ښځی خپل د اتڼ راز ـ راز نمایشات اجرا کوی، دموزیک ډ له محلی اهنګونه پر له پسی اوروی او یو عالم خوشالی په خلکو کی ښکاره کوی .

فیل هم په ژیړو او سرو ټوکرانو پوښل شوی او په طلائی ګهڼو چی جواهرات هم پکښې کار شوی وی ښایسته شوی وی ، پر سر ئی یو ښکلی

سایوان ور درولی وی چی د سیلون ګرمی ئی سر ورونه سوځی .

فیل ته نژدی د قوم بزرګان او غټان په حرکت کی وی او کوښښ کیږی چی فیل ته د خلکو لاس ورسیږی ، کله چی دا کار پشپړ سی نو دوی وائی د کال راتلونکی ورځی به مو په خیر او برکت تیری سی .

(وسټ پالی) په المان کی دیو ځای نوم دی چی کال ئی نوی سی دیو لوی جشن ترتیبات نیسی د دی جشن په ترځ کی زوړ کال (د دوی په عقیده) په دریاب یا رود کی ډوبوی چی نکل ئی داسی دی :

پداسبا چی د کال لومړۍ ورځ وی نو ددې ځای ښځو دیوی زړی ښځی په قیافه لویه ناوه کی جوړه کړی وی چی د شپی ۱۲ بجو ته لا څه وخت پاته وی د هری ناحیی ځوانان که نروی که ښځی له خپلو کورو راوزی د دریاب یا رود یا لویی ولې غاړی ته ځان رسوی او هغه ناوکی (یا د زاړه کال) مظهر هم ورسره وی کله چی د کلیسا د ساعت زنګ د ۱۲ بجو په اعلان شروع وکی نو ځوانان د زنګ د هر وار سره د بجو عدد ونه ورسره شمیری کله چی د ولسم زنګ "و وهل شو نو هغه د زړی ښځی په شکل ناوکی رود دریاب یا نورو اوبو ته په شدت ورغورځوی .

په دې وخت کی د وطن نوری نجونی چی ځانونه ئی په ښکلو کالیو سانبال کړی وی دې ډلو ته د خوراکه با بو سره راځی دا بیا نو د نوی کال مظهر بلل کیږی کله چی دوی د رود یا دریاب د غاړی هغه پخوانو ځوانانو ته راسی هغه ئی په ډیر احترام وکی او خوراکی شیان یی د لاسه واخلی د ساز و آواز او اتڼ په حال کی د دغه خوراکه با بو په خوړلو پیل کوی دا کار چی تمام سو بیا نو دغه جوړه کړی نجلۍ د ځوانانو له خوا پر لاسو واخیستل شی پداسی حال کی چی غزلی وایی د ښار پر خوا [و]ر رهی شی تر سهاره ساز و آواز او اتڼ شروع وی .

دغه نجلۍ چی ځان ئی جوړ کړی وی او د نوی کال علامه ده باید په همدغه کال دیوچا سره واده وکړی ، که په دغه کال چاو نه غوښتل نو باید دا نجلۍ لدې محل څخه کوچ وکی ځکه چی د دې ځای خلک بیا د دې لیدل شوم او بدمرغه بولی .

[پاته په ۱٦۰ مخ کې]



پښتوانی ادب

میرزا حنان

# پژمرده به ټول ګلان

## د کندهار وی

زه به وا وړم ستا له مخه یاره ګله؟
د بلبل ګرزېده نه کېږی له ګله
فکر مه کوه دیار دمخ په خیال کې
سودائی به سی په دا کې زغله زغله

هسې ستر ګوئی په قصد دخلکو څکه
دآبرو لینده تر غـــــوږه وڅکوله
زه او یار لکه دوې ستر ګی همسایه یو
یو دبل په کور شناخته نه یو هیڅکله
دا کېږي دکاږه بخته را رسیږی
چې مدام زما پر یوه ده ستا پر بله

لکه خس د سیلاب - خلاص د ګمراهۍ یم
پر او وږه در هبر سپور یم تر منزله
پژمرده به ټول ګلان د کندهار وی
چې په مرګ ولاړې [حنان] رنګه بلبله

ښاغلی محمد علی [خواجه]

# د آسمان هلال د استاد حسن خیر

دغرمی ګلان چی وه پرانه خازه
د بهار په نسیم ټوله سوه تازه

✡ ✡ ✡

بلبلانو هم د عشق پر ښغو باندی
باغ کښی جوړه کړه دګلو مغازه

✡ ✡ ✡

چی ښایست دی یو ذره پر ګلو پروت دی
د خوبۍ یی پر جهان سوه آوازه

✡ ✡ ✡

د آسمان هلال داستا د حسن خیر
لتا غواړی ولاړ ستا پر دروازه

✡ ✡ ✡

چی کتاب د بیلتانه دی پلاس راکړ
ښور ماښور می دراحت سوه شیرازه

✡ ✡ ✡

د مطلب ددیوال سرته نه رسیږم
که دریږم دطلب پر کنګوازه

✡ ✡ ✡

چی شهید دی کړم بی تیغه خال دی څکه
د امام په شان ولاړ پر جنازه

✡ ✡ ✡

[خواجه] مه در ښغوه سر و مال په عشق کی
هست و نیست دی پر خپل یار باندی بازه



د ښاغلي [سربن] تتبع او غونډونه

# د کندهار هغه نادره شعراء چي د زماني په مختلفو دوارو کي تير شوي دي

د ناصر الدين سبکتګين د پاچهي په زمانه کي طغان نومي د بست ولسوال تقلب او سرکښي وکړه.

نو يو جرار لښکر ئي ځيني په غرض د غزني څخه وګمارل شو او وروسته تر

زيات زد و خورد نوموړی حاکم (ولسوال) مات او سبکتګين ته د نور و غنايمو په ضمن کي يو لوی غنيمت چي

ابو الفتح بستي و په لاس ورغی. سلطان ځرنګه چي دده دشان سره ښا ئيدل هغسي ئي ورسره وکړه.

دده فترد مشر توب درنه وظيفه ئي ورغاړه کي وروا چوله او د سلطنت په مهمو امورا تو کي ئي د ځان مشر

وګرزاوه که څه هم په لومړی مرحله کي ئي د (بای تور) حاکم د منشي توب د وخت د حاسدانو په ملحوظ نوموړی وظيفه قبوله نه کړه او د پاچا په اجازه ئي د کندهار په (رخج) کي خو ئمر په عزلت او بيکاری سره تير کړ مګر کله چي ئي خاطر د بای تور او اطرافيانو له طرفه څخه جمع شو نوئی د مجبوريت او ګذارې د حصر توب له وجه د سلطان په دستګاه کښي ځان داخل کي او تر مرګه پوری پر دغه وظيفه باندی باقي و.

مګر ځيني مؤرخين بيا وايي د وزارت په زمانه کي مړ شوی دی د مرګ نيټه يي د فريد و جدی دائرة المعارف [۴۰۰] هجری سنه او ابن خلکان ئي [۴۰۱] هجری سنه ګڼي.

دابو الفتح بستي آثار:

عمومي د لباب الالباب د کتاب ليکو نکی وايي ما دابو الفتح بستي دوه ديوانه پخپلو سترګو ليدلی دی چي يو يي په تازي او بل په فارسي ژبه دی، دا لاندني قطعه مي د نمونی په ډول ځيني رانقل کړه: ۞

---

د ۱۳ مخ پاته

## د نړی په مختلفو ولسو کي .....

دروسيې په (اوکرائن) کي ځوانان ځانته د کال په لومړی شپه ښځه تا کی په داسی ترتيب چي د ښار څخه د باندی چمنانو ته وزی هلته ډيری ښځي او نجونی هم تللي وی مړ و ښځي د نارينه و ځوانانو څخه غوښتنه کوی چي لدې ځايه څه قدر ګوښه سی هغه وخت پيغلانی نجونی تر يوه لوی ځو کر لاندی پټوی او بيرته ځوانان راوغواړی او هر ځوان خپله ښځه تر ځو کره لاندی بيله دې چي و ئي ويني

انتخا بوی او دا انتخاب د دوی د خواهش سره سم شوی وی ځکه: د مخه لا ځوان ته هغی خپلی نجلی ځيني نښانی او علامات ورښوولی وی او هر ځوان خپل د مطلب ځو کر ته برابر رهنما ئی شوی وی. خو که فرضاً انتخاب غلط و خيژی او سره خوښ نه وی نو د څه مقدار روپو په مقابل کي به د هغی نجلی څخه ځان خلاصوی.

یکی نصیحت من گوش دار و فرمان کن
همه به صلح گرای وهم مدارا کن
اگر چی قوت داری و عده بیار
نه هر که دارد شمشیر حرب باید رفت ۰

که از نصیحت سود آن کند که فرمان کرد
که از مدارا کردن ستوه گردد مرد
بگرد صلح گرای و بگرد جنگ مگرد
نه هر که دارد بازو زهر باید خورد

* * * * * * * * * * * * * * * * * *

دابو لفتح بسی د زو ړی ټاټوبی قاضی احمد ابن خلکان د دنیات په کتاب کی لیکی چی ابو الفتح بستی په صفایا کی چی یو ناحیه د بست ده زیږېدلی دی گمان کوم چی صفایا به د مخه [نهر صفا] وی چی په ما بین کی د کندهار او قلات ئی تر او سه پوری خرابی موجودی دی ۰

د ابو الفتح بستی د تحصیل زمانه :

علامه بستی د هغه عصر له نجیبه علماؤ څخه بشپړ کړی دی ۰

چی یو له هغو څخه ابو حاتم ابن بستی دی یاقوت حمری لیکی چی دی جناب په خارم

قرن کی په ادبی فنونو او احادیثو په علم کی په ټوله شرق کی ساری نه درلودی ابو الفتح بستی خاصتاً ده په توجه سره وهغه مرتبه درجی ته رسیدلی دی چی اوس ئی ټول اصحاب د بدیعیاتو پیروی کوی او لا ندی بیت ئی ده خط مشی گرزولی دی :

الی حتفی مشی قدمی
اری قدمی اراق دمی

د ابو الفتح بستی افکار :

---

که غواړی چی د بل چا محبت خپل ځانته حاصل کی نو هغه چی تا ته د رکړه سوی دی له ده سره یی شریک که، تر جنګ په صلح خوبش وسه، که غواړی چه نوم دی د ظالمانو په فهرست کی درج نسی ، د خدای [ج] ټوله او امر پر ځای که چی د سړی توب مصداق وګرزی

د هم عصرو شاعرانو مدحی چی د علامه بستی په وصف کی ئی ویلی دی :

موسی ابن محمد ابن عمران طوبقی فرمایی

اذا قیل ای الارض فی الناس زنیة
اجبنا وقلنا ابهج الارض بستها

فلو اننی ادرکت یوما عمیدها
لذمت ید البستی دهرا وبستها

ابن خلکان په وفیات الاعیان کی د ابو الفتح بستی د نظم او نثر د شرحی او صیف کوی او بعضی ئی نمونی په دول بیانوی

اذا حسست فی اللفظی فتوراً
وحفظی و البلاغته والبیان
فلا ترتب بفهمی ان رقصی
علی مقدار ایقاع الزمان

په یوه ځای کی پخپله استاد ابو حاتم بستی د اسی ستاینه کړی ده ابو الفتح بستی یو ستوری دی چی د بست د علم پر آسمان باندی راختلی دی خو قدر ئی هغه وخت پیژندل کیږی چی څوک ئی په حقیقی معنی سره وپیژنی ۰

ابو حاتم محمد بستی :

یو له اجله علماؤ څخه د بست د کندهار ابو حاتم محمد ابن حبان ابن معاذ ابن سعید ابن معید ابن شهید بستی دی چی په (۳۵۴) هجری سنه کی مړ شوی دی ۰

او تصنیفات ئی په لاندی ډول دی :

۱ کتاب الصحابه په ۵ جلده کی
۲ » التابعین په ۱۲ جلد کی

۳ کتاب تبع التابعین په ۱۵ جلده کښی
۴ کتاب نبا الانباع په ۷ جلده کښی
۵ کتاب نباع التبع په ۲۰ جلده کښی
۶ کتاب الفصل بین الـقلته په ۱۰ جلده کښی

۷ کتاب علل اوهام اصحاب التواریخ په ۱۰ جلده کښی
۸ کتاب علل حدیث الز هری په ۲۰ جلده کښی
۹ کتاب علل حدیث مالك په ۱۰ جلده کښی
۱۰ کتاب مناقب ابوحنیفه [رح] په ۱۰ جلده کښی

۱۱ کتاب علل ما استناد الیه ابو حنیفه په ۱۰ جلده کښی
۱۲ کتاب ما خلف الشوری شعبته په ۳ جلده کښی
۱۳ کتاب ما انفرد به اهل المدینه من السنن په ۱۰ جلده کښی

۱۴ کتاب ما انفرد به اهل مکه من السنن په ۱۰ ټوك کښی
۱۵ کتاب ماعند شعبته عن قتاة په ۳ ټوك کښی
۱۶ کتاب غرایب الاخبار په ۲۰ ټوك کښی
۱۷ کتاب اغرب الکوفین عن البصریین په ۱۰ ټوك کښی

۱۸ کتاب ما عرب البصریون عن الکوفین په ۸ ټوك کښی
۱۹ کتاب اسامی من یعرف بالکنی په ۳ ټوك کښی
۲۰ کتاب الکنی من یعرف بالاسامی په ۳ ټوك کښی
۲۱ کتاب الفصل و الوصل په ۱۰ ټوك کښی

۲۲ کتاب التمیز بین حدیث النضر الحدانی و النضر الخزاز
په ۳ ټوك کښی
۲۳ کتاب الفصل بین حدیث اشعث ابن مالك واشعث ابن سوار
په ۳ ټوك کښی

۲۴ کتاب الفصل بین حدیث المنصور ابن المعتمر ومنصور ابن
زاذان په ۳ جلده کښی
۲۵ کتاب الفصل بین ابو عبدالله المکحول الازدی په ۱ جلد کی

۲۶ کتاب موقوف مارفع په ۱۰ جلده کښی
۲۷ کتاب آداب الرجاله په ۳ جلده کښی
۲۸ کتاب السند خبادة عن عباد په ۱ جلد کښی

۲۹ کتاب الفصل بین
حدیث نور ابن یزید و نور ابن
زید یو جلد
۳۰ کتاب ما جعل عبیدالله
ابن عمر عبدالله ابن عمر

۳۱ کتاب ما جعل شیبان
سفیان و سفیان شیبان په
۳ جلده کښی

۳۲ کتاب مناقب مالك ابن
انس په ۳ جلده کښی .
۳۳ کتاب مناقب الشافعی
په ۳ جلده کښی

۳۴ کتاب المعجم علی
المدن په ۱۰ جلده کښی
۳۵ کتاب المقلین من
الحجازین په ۱۰ جلده کښی .

۳۶ کتاب المقلین
من العراقین په ۲۰ جلده کښی
۳۷ کتاب الابواب متفرقه
په ۲۰ جلده کښی

۳۸ کتاب الجمع بین
الاخبار المتضرة په ۳ جلده
کی

۳۹ کتاب وصف المعدل
والمعدلی په ۳ جلده کښی
۴۰ کتاب الفصل یو جلد
۴۲ کتاب الهدیته
۴۱ کتاب وصف په ۲۰ جلد
کښی

## سردار مهردلخان مشرقی :

سردار مهردلخان د مشهور سردار پاینده خان محمدزی له هغو [۲۱] زامنو څخه دی چی د افغانستان په تاریخ کی ډیر شهرت لری د سردار کندلخان سکنی ورور او نور ورونه لی د اعلیحضرت امیر دوست محمد خان په عصر کی د کندهار مشران او حکمرانان وه سردار مهردل خان د ۱۲۱۲ ه د محرمی په میاشت کی زیږیدلی او د خپلو ورونو په سیوری کښی لوی شوی دی سردار مهردل خان د پښتنو لوی ادیب او عالم دی چی په فارسی هم ښه دیوان لری او تخلص ئی مشرقی دی دا پښتون سردار ډیر علم پالونکی او ادب روزنکی سړی و په علمو او ادبیاتو او تصوف کی ئی ډیر ښه معلومات درلوده د ده ځای په کندهار کښی یو ادب تون و

چی ډیر ادبا شعرا پکښی یو ځای کیده ، میزاخان حاجی عبدالله صدیق اخندزاده، ملا میران او نور مشهور ادبادی.

دا ادیب سردار معاصرین او ملګری وه، سردار مهردل خان په جمعه د دریمی خور [۱۲۷۱ هجری کال] چی د [۵۹] کالو و چی په کندهار کی وفات شوی او هلته د حضرتجی بابا له مزاره سره ښخ دی میرزا احمد نومی شاعر د ده د وفات د تاریخ ماده په دغه ډول ویلی ده .

احمد از هر کس تفحص می نمود — سال فوت آن شه اقلیم جود

هاتفی بنهاد سر بر پاس گفت — منزل او باد جنات خلود

((۱۲۷۱)) ج

میرز احنان د ده معاصر ادیب د سردار مهردلخان مرثیه په یو خوږ بیت کی ویلی ده چی د دې ادیب سیرت او سجایا ښه ځنی ښکاریږی او هغه داده:

وجوار ته د مولا سردار قرین ولاړ
چی مرغوب د کل عالم و په تحسین ولاړ
د هنر او علم کان د احیا بحر
په خلعت د نیک نامی څه ښه رنګین ولاړ
په جیفه ئی د دنیا ځان ککړ نه کړ
د عمل په صابون پاکه جامه سپین ولاړ
وسخا ته ئی حیران حاتم طی و
تکیه ګاه د هر فقیر او د مسکین ولاړ
فیض رسانه لکه لمر و کل جهان ته
مستقیم پر شریعت حامی د دین ولاړ
په حکمت یی افلاطون شا ګرد د عصر
چی تقریر یی و شرین تر انګبین ولاړ
اعتماد با ندی د کړ ونه دی [حنانه]
چی سردار مهردل د دې د نیا یقین ولاړ

[نور بیا]

نثر

# پسر لیه ښه راغلې

راسه، راسه ستا سره خو د نوي ژوند زيري ملګري دي! خداى دې راوله! ټول راشئ د بزګرانو اختره!

ستا په راتلو سره درو، غرو، رغو او د ښتو سپينې جامې وغورځولې او د خوشحالو ښکلو په څېر ئې شنې جامې بدلې کړې

ستا رانګ ته ټولو خلکو سترګې پر لارې نيولې وې خصوصاً بيا هغه بزګرانو او کروند ګرو چې د ژمي په سړو ورځو کښې ستا په انتظار کې ناست او غريبانو په د کورو څخه د باندې

مځکې په دې ملحوظ چې هيواد مو سمسور و اولې پيدا او کرهڼه مو ترقي وکړي خړوبه او يوې کولې

څود کار او زحمت په برکت خلکو ته غذايي مواد برابر او د هيوادوالو اقتصادي بنياد پر پښو ودريږي.

داته ئې چې د ژمي بد شکله ښې ته چې ټل د غريبانو د آزار موجب ګرزي شکست ورکړي.

خواران د رحم او مهرباني په غېږ کي نيسي او د ښه ژوندو لور ته ئې بولي.

ستا رانګ وهر شي او هر چا ته د نوي ژوند الهام بخښي همدغه سبب و چې ما هم په خپل ضمير کي د خوشبختي احساس کاوه او غوښته مې چې ستا په راتلو سره د نوي ژوند د پاره نوي ګام واخلم او خپل ټول کارونه يو ځل بيا ستا په راتلو سره چې د نيک پالي ارغوني دود ځغل کيږي شروع کړم.

په رشتيا هم ستا رانګ مؤثر دی هر شي ته نوي ژوند وربخښي وچ وابښه، وچې ونې او بې ګله بوټي ټوله وخپلو ښو ته تغير ورکوي.

وابښه د سپيره رنګ څخه شنه رنګ ته، بې پاڼې او بې ميوې ونې د ميوو ګلان کوي. د ګلانو بوټي غوټې خلاصوي او په خپله يوه خوله خندا سره (چې د خندا يوازينی عامل ئې ته ئې) د ښکلو په زړونو کې يو عالم د خوښي، نشاط اميدونه او آرزوګانو نظام روزي نو داته ئې چې د طبيعت هستي ته ښکلې بڼه ورکوي.

دلته بايد يو ځل بيا ووايم چې د ژوو لپاره د غذائي موادو ارزاني بخښي ښکلو او ځوانانو ته د خوښي او خوشحالي يو عالم ارمغان راوړي.

رشتيا چې داته ئې چې د ټولو ژوو لپاره خداى [ج] سبب ګرځولي يې زموږ څخه خود مني خزاني سيلي د ممسکو شتمنو په څېر هر څه را څخه تالا کړه يوازي همدا ته ئې چې پر ټولو ژوو باندي



د ښو پېرزوينه لري ستا دی عام سخاوت مهرباني ته ټول عالم د قدر په سترګه ګوري او هر يو دې ښه ستايي خو پام کوه چې په دې خبره غره نسې، او هر څه د ټولو انسانانو په تيره بيا د بېوزلو د پاره نثار کړي.

زه د يوه دوست په صفت تا ته وايم که غواړې چې د ټل له پاره دې خلك ستاينه وکړي د پسرلي پيغامونه راوړه خپل نظر مه سپموه او په هر شي به کي خپل د مهرباني بختور وزرونه غوړوه او دغه خزان و هلي د نيا په ښاديو ښادوه ځو ستا د ښه نظر په وجه د نيک مرغي په ملحوظ د عالميانو پر زړونو د رحمت بارانونه واوري.

(ښاغلی رحمت الله مړوند)

ښاغلی ژواک

# ادبی برم څه سو؟

دلته دا مېړا نور پوسره توره او د توری سره قلم حتی د بنه فکر سره تیره ژبه هم وه.
په دی ښار کښې چې حنان بارکزی به ویل:
داغفلت وهلی زړه به ریزمریز کړم
ما تیده د زنګ وهلی کلپ کلی ده
زړو نه غفلت و نه وهل؟ او دلته د دی زنګ وهلی زړو نود پاره ما تیدل په کار ندی؟ د کندهار د لوی تاریخی ښار نوی پوز لمو!
د کندهار د نوی نسل تهالکیو!
د کندهار د نوی ژوند غوښتونکو!
دا کندهار دی!
دلته د میوند معرکه د تاریخ په لمن کښې د افغانستان د افق ښه سره رنګینه نخښه ده.
دلته د سوبې او بریښې افغانی ستره هغه هو هیر دی د عینو پښتنې روحیه او د لویې ادې پښتنې اروا ستاسې د نوی ژوند انتظار باسی.
اوریدلی مو دی چې لویې ادې د خپل زوی وزیر فتح د ړندولو په وخت کې استازی ته وویل: دستر ګو کښلو په وخت کې خود وزیر تر خوله دو یش او آخ ناره نه ده وتلی؟
هغه وویل: په!
لویې ادې شکر و کیښ چې فتح پښتنې غیرت سا تلی دی.
داوه د لویې ادې غوښتنه د پښتون زوې څخه، او عینو د لوی احمد شاه بابا څخه د خپل محبوب بیلیدل د دې موجب و ګڼل چې ورته وواېې:
[ته ما خپل همزولو ته شرموی څکه د وی به وایې
د اڅوان د جنګیا لیو څخه تښتید لی دی) د دې ږول د همزولو پیغور عینو دې ته وګومار له چې دده څخه مروره شی او د دې پیر ته د لوی احمد شاه بابا لښکر ته ورولی داده د عینو غوښتنه چې د خپل مین څخه ئې کوی او د ی د سوبې د ګټلو سره یو ځای خپلی غیرې ته را بولی.
وګوری؛ نن زمونږ د غوښتنو رخې کومې خوا ته دی.
د مومند محمد ګل ادبی برم چې د کندهار په ښار کې د پښتو انجمن په جوړولو جوړ و هغه نن د کندهار د ښار د زړې کلا د نړولو سره سم ندی نړیدلی؟
زه خو ئې نه وینم زما ستر ګې ړندی دی که دا محیط را ته ګنګ ړوړوند ښکاری دلته د آرمان ناری ولی نه اوریدل کیږی.
او دلته د زاړه برم یاد ته کندهاریان ولی نه را بلل کیږی: ا کندهار نه دی؟
وواياست د کندهار زړواوړو!
د کندهار د برم پر میراث ناستو خلکو!

زه پوښتنې لرم او د پښتنو ځواب ته په هیله ناست یم.

ما ته ځواب ولې نه راکوی زه زاړه خوبونه

وینم او د ازوړ خوب تاسې د تیر برم سره د میرویس نیکه او احمد شاه د شنختو څنګ ته مرور ناست بولی.

تاسې کولای چې د ادب د برم د زلمی حنان بارکزی قبر را وښیاست چې ورسم

او د ژبې ښوروونو مراد ځنې وغواړم.

راوئی ښیاست د حنان بارکزی قبر د استاد پیر محمد مزار او د شمس الدین کاکړ د زیارت لوری، پوهیږم چې

ژوندی زما د ارمان پارید لو علاج کولو ته زندی حاضر د کندهار ورونو!

ما بوزی د حنان، پیر محمد او شمس الدین مزار ته.

زه هلته د مزار مړه شمع لګوم زه دا شمع مړه پری ښوول ګناه بولم

ما ته دا ـ ب د هغو بلبلانو باغ او بوستان را وښیاست

زه ځم زه د هغه باغ خزان وهلی لوری ته هلته د کوم مسافر راغلی بلبل

سره د ارمان چیغې وهم د اکار کولای شی ؟!

پوهیږم چې تاسې زما چیغو ته په کوم اهمیت نه یاست قایله

تاسې زما د ارمان سره څه بې علاقه ښکاری.

تاسې پرون هیر کړی دی او د

سبا هیله درسره مړه ده تاسې نن د اقل ژوند جار او جنجال په ځان اخته کړی یاست.

ستاسې سره نو د زاړه برم د شمع لګولو میڅه نسته

تاسې ته د ژبې ښوروونو پر ځای پټه خوله بهتره ښکاری.

مګر زما د لیونی زړه علاج پکار دی علاج ؟

پوهیږم چې تاسې ته زه د خپل ښار یو لیونی ښکارم.

منم چې زه لیونی یم مګر د لیونو لپاره د یوه ځنځیر په کار دی

ما ته د یوه ځنځیر شرنګی تر پټه خوله غوره ایسی.

کولای سی چې خپل لیونی ته ځنځیر پیدا کړی.

منم چې تاسې په اوسنی حال راضی یاست.

یقین لرم چې تاسې ته په اوسنی ژوند کی تر څه وپلو نه وړل غنیمت ښکاری مګر د دې لیونی علاج پکار دی او د دې پارید لی ارمان د خاوند د پاره هدیره وښیاست.

د اکار کولای سی او د اد ژوند ارمان زړه ته د تورو خاورو نازور کولای شی؟

زه راضی یم چې ما د خپلو تیرو مړو نیو ځنګته ورو سپاری زه خوښ یم چې د ځان سره دا پارید لی احساس هلته ملګری وساتم څکه په ژوند کی ما تاسې د خپل پارید لی احساس ملګری نه کړی.

ما و سپاری د مړو نیو ځنګته ای په ژوند کی د ما څخه پیلو! ما و سپاری پریږدئ

که موداځوژبی زده کولی د هغو تا ثیر هم په نظر کی ولری

---

دادیوه ایټالوی موسیقی دان نظریه ده وائی کله چې د ـ پ څو اروپائی فلسو ژبی زده کوی نو د ـ پ ژبو تا ثیر هم په نظر کی ولری:

که غواړی چې یو محبوب سړی در څخه جوړ سی فرانسوی زده کړی.

که غواړی صرف استفاده وکی او هر ځای وچلیږی نو انګلیسی زده کړی.

که غواړی چې غزل خوان در څخه جوړ سی ایټالوی زده کړی د ه [ژباړه]

د خارجي منابعو څخه

د ښاغلي محمد ابراهيم امين ژباړه

# د هند موسيقي

هند موسيقي يو عالي سيستم لري چي ۴۰۰۰ کاله ئې تاريخ اټکل کيږي د هند په موسيقي کي داسي مشخص نقاطه ستة چي د ټولې دنيا موسيقي دانان ئې بايد مطالعه کي د موسيقي د مېلودک د سيستم

ټول طرزونه په کښې دي او دغه ته د هند د موسيقي سوغات ويل کيږي چي نوره دنيائې ورکوي ·

د رانګونو تصور او فکر د کاملې موسيقي د پاره يو لوی عامل دی که لږ فکر وکړو د ساز ټول آلات د هند د زړو قصو او تر يمودت سره ارتباطاری چنانچه

د باد نېبك وشنو نومونه چي د صاف څخه جوړ شوي دي د مذهبي مراسمو دا په وخت کي يا ديږی کرشنا يا قلوت او اسوا ئي

د برهما نا ندينه د هند په موسيقي کي ډير اهميت لري رګا الافانا يا د رانګونو د هنري تجسم يو بشپړ موسيقي ده چي په هندي اصطلاح (فرسه) ورته ويل کيږي هندوستان په د موسيقي خاوره يا (سانګ بهومي) ويلای شو، موسيقي د ملت د ژوند او داساسي احتياجاتو څخه بلل کيږي د هند د موسيقي سيستم د دوی د مقام د عظمت او د لوړي د صورتونو د کشف د احساساتو د ښکاره کولو لوی عامل دی هندي رانګونه مسلم حقايق دي د هغو کسانو د پاره چي متعلم او تربيه ئې په ښه شان شوي وي د




هند خلك موسيقي د لذت او خوش ګذراني د پاره نه خوښوي بلکي غواړي چي په دې وسيله سره د زړونو باريك تار ونه په ريږد راولي او په معنی د نيا کي د ژوبيد دلاري خپله اخلاقي پايه لوړه کي ·

هند د موسيقي په ټولو شقوقو کي بهای او غني دی د کامل وزن سيستم د راګانو تالا د سيستمونو سره د موسيقي دانانو د پاره او

هغه کسان چي موسيقي د هنر په حيث تجزيه او تحليل کوي اير اد ئې پرسخت کړيدی ·

او دغه هنر د تکنيك له مخي دومره قوی شوی دی چي پر هغه باندی انتقاد د چا د وسه

پوره ندی د هند موسيقي د هنري جنبي څخه علاوه نور صورتونه لکه د مذهبي مراسمو آهنګونه او پر ارقص فلکور تياتر هم لري د هند په زړه وژبو کي لکه سانسکريت او نور داوړا

تیاتور رقصونو سلسلې سته هند د موسیقۍ د آلاتو له مخې بیخي غني دی .

په رهي او بادي ډولونو ویشل کیږي غیر له پیانو نه چې خاص ردیف لري نور ټوله د موسیقۍ آلات لري د هند موسیقي په څلور میلادي قرن کې پنځه ډول ویشل شوې وه او دغه تقسیم په ټوله دنیا کې په رسمیت پیژندل

شوی دی او د نړۍ موسیقي دانان باندې تر بیه کیدل تالا [کوردو پونیک] سوشیرا [اروپونیک] آوانا [ممبرا-بونیک] گانا [اتو یونیک] هندوستان ډیر زبردست نامي سازنده او غزل ویونکي تراوسه تربیه کړیدي .

دهند د موسیقۍ متون د ۳۰۰۰ کالو په سیر کښې د موسیقۍ ودنیا ته بهترین

اسناد او مجموعې تهیه کړیدي کمپوزیشونه او داسې نور آثار چې د ساسکریت په ژبه کې سته د هند هیڅ

ادبي اثر نسته چې د هند څخه د دې شیانو بحث نه کوي او دغه اشارات دي چې د هغو په واسطه موږ د هند د موسیقۍ په باره کې معلومات پیدا کوو .

هند د نړۍ د موسیقۍ په تاریخ کې لومړی دولت دی چې د وزن سیستم ئې را ایستلی دی د اروپائي

سولفا سیستم تاریخ د کیدو د ارزوو دورې ته [۹۹۵ څخه پیاتر ۱۰۵۰] میلادي پورې رسیږي اما هندي

وزنونو ته چې د [ساه، ریگا، ماپا دانیسا] د ۴۰۰۰ کالو پورې رسیږي

داد نبشار په بعضو برخو کې د [نا، را، پاریو، راجاکا] ددې

وزنو څخه دا وزنونه په کښې راغلي دي د هند د موسیقۍ طرز یوازې ایدالي نه دی په بعضو کې را ئکونه پکار یږي .

د هغه وخت د هندوستان موسیقي دانان د داسې عالي موسیقۍ سره ډیره علاقه درلوده

او کوم آثار چې د دوی څخه پاته شویدي دا ادعا ثابتوي د هند

لوی والي او پراخوالي ددې سبب شو چې هند د وه ډوله موسیقي

پیدا کي یوه ته [کاراناټک] او بل ته هندوستاني ویل کیږي دغه د واړه تقسیمات د هند د زړې

موسیقۍ څخه اساس اخلي د هند د موسیقۍ د ایجاد تاریخ د تصادف په ډول دی .

د عربو، ایران او نوري دنیا موسیقي دانان د هند دربارو ته را دعوت شویدي چې دغه هنرمندانو خاصه موسیقي هند ته راوړه او د هند د شمالي برخې موسیقي د هند د جنوب

خوا ته نقل شوه او د پردو د سلطې څخه خلاصه شول ځکه نو هغه د هندوستان اصلي موسیقي بلل کیږي . ۱۱ قرن نه وروسته ددې دوو ډولونو د بیلتون څخه استادان د سانکتبایا موسیقي څخه خبري کوي چې د هندوستان او کارناټک څخه جدا ده هند ۷۲ ډوله موسیقي را وایستل او ۱۴۳۱ نیمې پردې ئې جهاني شهرت لري دغه طرز د لمړی محل د پاره ونکا تاما گهامې په ۱۷ قرن کې په تانجور کې چې د هند په جنوب کې دی پیدا کړ سوماناتا د راگاویبوت [۱۶۰۹] میلانې طرز [۹۶۰] پیدا کړ اما د پوره پردې او د نیمې پردې سیستم دده په ابتکار را توشروع کیږي، هند د موسیقي په الوگې ډیر شهرت لري مثلاً دوینو آلې دو هلو د پاره یو عالي تخنیک په کار لري چې د گوتو حرکات په دا ډول ادا کي چې د نړۍ موسیقي دانان ئې ته په غابن ورته نیولی ده د هند د موسیقۍ

[پاتې په ۲۵ مخ کې]

ژباړونکی عبدالهادي (تپاند)

# د هند د نقاشۍ ارغوني هنر

د هند د نقاشۍ لومړي آثار چې تر اوسه په لاس راغلي دي ډېر ښکلي اثر دي چې د (اجانتا) په غار د مهاراشترا په ایالت کې واقع دي موجود دي.

دغه نقاشي د لوی بودا د ښکلو مجسمو څخه الهام اخستی دی او په نقاشۍ کې د بودا مختلف حالات په مختلفو رنګو ښکاره شویدي.

په دغه نقاشۍ کې د لوی بودا په شاوخوا کې ښایسته ښځې او نران ليدل کېږي.

د اجانتا د هنر لوی والی دادی چې په عین حال کې د یوه پیام حکایت کوي د هنر د نګاه څخه هم کامل دی په دغه نقاشیو کې دوجود ټول غړي په کامل هنري حس سره ښایسته او په ښکلو رنګو نقاشي شویدي او پر دې علاوه د انسان د ژوند مختلف حالات ئې شرح کړیدي.

وړوکی ماشومان د مور په غېږ کې د شیدو خوړلو په حالت، وړوکي د لوبو کولو په حالت، ځلمیان د تفریح تکلیف او علم، د مرګ او داسې نور و حالتونه ښکاره شوي دي.

د اجانتا د نقاشي هنر تر زر کاله ډېر د دريمې پېړۍ یعنې د مخه تر مسیح تر اومې میلادي پېړۍ پورې رواج درلود.

چې د ډېرو هیوادو د نقاشیو



د سبک څخه الهام اخلي:

د خطو طو هماهنګي او رنګ آمیزي چې د اجانتا د غار په نقاشیو پورې منحصر دي د افغانستان (بامیان) د غار په نقاشیو په سیلان کې د (سیګي ریا) نقاشي، د تبت او نیپال د پرچم پر مخ نقاشي، په چین کې د (تونج هوانګ) د غار نقاشي، او د بودا د مقدسو اماکنو په معابدو کې په (هوري یوجي) په جاپان کې لیدل کېږي.

که څه هم د اجانتا اطاعت نفوذ د هند په نقاشیو کښې په اومه میلادي پېړۍ کښې پای ته ورسید مګر دیوالي نقاشۍ ئې د ۱۹ پېړۍ تر منځنۍ دورې پورې ادامه درلوده.

(پاتې ئې په ۲۶ مخ کې)

[د ۲٤ مخ پاتې]

## د هند موسیقي

بعضې آلې چې په نوره دنیا کې نسته دادي: مریدنګا، ګوتو وادیا، ګماناه، کنجیره، دولا، کوماد الاپنجا، مکما، وادیا، جندا، تمیلا، یدا، کا د هند ملي رقصونه مخصوصه ښکلا لري د غه حرکات او نمایشات د هند د موسیقي د بشپړوالي لوی سبب ګرزیدلی د دې نه علاوه محلي وزنونه د شیدو لو شونکو ماښووانو، چوپانانو، صنعتي کارګرانو آوازونه د هند موسیقي ډېره پراخه کړه هندي موسیقي په تجسم ډېره غني ده مثلاً په مجسمو او نقاشي جوړولو ئې د هند د موسیقي دانانو اداطرزونه ونښودل د همپوما دوراتیر و نلولی سو جندرام تریوا ندروم معبدونه د هند د ملي غرور څخه بلل کېږي او په څلور نازکو لرګیو به ئې د هغو څخه عجب آوازونه کښل.

# الکساندر پوشکین

الکساندر پوشکین شاعر او لوی روسی لیکوال په ۱۷۹۹ کی په روسیه کی زیږیدلی دی او په (۱۸۳۷) په پترزبورګ کی په قتل ورسیدی .

دغه روسی آزاد شاعر د لوی اشرافی کورنی څخه و . پوشکین په ۱۸۱۷ کی د روسیې په وزارت خارجه کی په خدمت پیل وکړ دری کاله وروسته په ۱۷۲۰ کی د لوی مجموعی اشعارو په نشر کولو باندی زیات شهرت پیدا کړ .

په دغه کال ئې یوه قصیده د آزادۍ په باره کې وویل چې د ده د لوړ تیا او افتخار سبب شو . ده په دی شعر کی په ډیر شجاعت سره ناګفته نکتی پرته راوړی پردې څو لو علاوه دی په وزارت خارجه کی مشغول ؤ په ۱۸۲۴ کی د قفقاز تر لید وروسته ئې یوه قطعه د «قفقاز محبس» ولیکل ، پوشکین په ۱۸۲۴ کی د خپل کار څخه لاس واخیست ځکه د هغه وخت حکومتی مقاماتو ازادی خوښانه افکار مضر ګڼل ، پوشکین په دغه کال د خپل پلار جایداد خرڅ کړ پسکوف ته ولاړ او په هغه ځای کی چی ډیر جاویدانه اشعار ئې خلق کړل چی د هغې جملې څخه د [بوریس ګودونف] او [اوژنی اونژین] آثار دی ، چی د ا کتاب د ده د ژوند آخرین سرګذشت دی .

پوشکین یو منظوم داستان د [سرای د باغچې چینه] وویل چې ډیر اهمیت او شهرت ئې پیدا کړ چی ډیر رنګین او جالب اثر دی او په ۱۸۴۷ کی ئې (لوکیها) ولیکل .

پوشکین په ۱۸۳۱ کی کی د لوی ښځی سره : (نا ئیلا) په نامه واده وکړ پوشکین په دی وخت کی د روسیې په دربار کی د (تاریخ نګار) په صفت مشغول شو .

پوشکین په دې دوره کی د [پوګساچف د ښورښ تاریخ] ولیکی د کاپسین دلور داستان هم د تاریخی اثارو څخه دی دغه کتاب د ده د منثورو اثارو څخه ظریف ترین کتاب دی که څه هم پوشکین د ۱۸۲۵ کال په ښورښ کی لاس نه لود مګر بیا هم د روسیې په وزارت خارجه کی استخدام شو .

پوشکین یو تکړه کار یګر ؤ که څه هم لږ عمر ئې درلودی ، ده که څه هم د عیش او وخت تیر ولو سره علاقه ډیره درلوده خو بیا هم ئې همیشه لیکل د پوشکین مقام په روسی ادبیاتو کی ډیر لوړ او انکار نا پذیره دی د ده ښکلی نمایشنامی منظوم داستانو نه ژوندی او جاندار غزلی او نو اثار ئې څو له د روسیې په ادبیاتو کی لوړ مقام لری دی روما نتیک ؤ او نوی سبک نه ئې د روسیې ادبیاتو ته پاره وړاندی کړل .

پوشکین په ۳۸ کلنی کی د یوه زخم په واسطه ووژل شو .

د عبدالهادی ژباړه

---

[د ۲۵ مخ پاته]

## د هند نقاشی . . .

د دیوالی نقاشیو په وخت کی د کښا یو ډیر مهم خطی نقاشی چی لومړی د خرما د درختی پر برګ او وروسته د کاغذ پر مخ رواج شوا و په اتم میلادی پیړۍ کی یعنی په دیوآری نقاشیو کی چی د الورا په غار کی لیدل کیږی خطونه ئې نازک او ګردی دی او د غه سبک موجب شو چی د کاغذ او د خرما د درختی د برګ پر مخ د نازکو او ګرد یو خطو د سبک نقاشی په وجود راغله مګر د خطو ګردی کیدل پوازی دا سی سبک نه ؤ چی په هغه دوره کی تحول راولی .

د خطی کښا بو په دوره کی د [پالا] بنګال د نهمی پیړۍ څخه تر دولسمی پیړی پوری دا جانتا په غارو کی معمول وه ډیر ته رواج شول .

د هند د مغلو د دوری او نوی دوری نقاشی سبک به په راتلونکی هفته کی مطالعه کړو .

ده باندنیو مناېعونه

# د تلیفون په‌واسطه تدریس

دامریکې په‌متحده ایالتو کې دهغوزده کوونکوتپاره چې دناروغۍ له کبله‌نشي کولای ښوونځي ته حاضرشي یوه‌دحل ښه‌لاره پیداشویده .

چې دغه دحل لاره تیلفوني تدریس‌دی دښوونځیو مدیران عقیده لري چې ناروغ زده کوونکی بایدله‌خپل درس‌وروسته پاته‌نشي په(فلادلفیا) کې [۱۵] زده کوونکي چې د ناروغۍ له کبله په‌ښوونځي کې سوبدلای نشوای په‌دغه‌ډول درس‌وایي دغه‌تلیفونونه دناروغ دکټ ترڅنګه ایښودل شوي‌دي اوهغوی کولای شي‌چې دپوښتنوجواب دنورو زده کوونکی په‌واسطه هم اوریدل کیدای شي او دهغه غلطي هم په همدې توګه اصلاح کیږي .

☆☆☆☆☆

## موقتي مور

کوم‌وخت چې یوه‌مور ناروغه کیږي اویا کومې مسافرۍ ته ځي ، نو دوړکوړلرونه باید څه‌وکړي؟

دمیندو«اورژانس» په نامه‌ړملګرو سرویس

چې‌دیوه کاله راهیسې دالمان دفرانکفورټ په‌ښارکې تاسیس‌شوی‌دی ، نوموړی سرویس هروخت چې دماشومانو پلرونه وغواړي ، د

ناروغۍ یامسافرۍ‌مور په‌عوض کې[اورژانس] مورورلیږي .

دغه‌اقدام‌اوس‌داسې دلچسپ‌اوپه‌زړه پورې ورکړي‌دی چې پدې‌ډول نوموړی مرکز په اسانۍ سره وکولای سی چې د بې مورو ماشومانو د پلرونو غوښتنو ته ځواب ووایي .

پورتنۍ غوښتنې دومره زیاتې‌شوې دي چې اوس دټوله هیواد په‌یوه اوبل سرکښې داسې نور مرکزونه د جوړ یدلو په حال کې‌دي .

په‌نوموړي مرکز کې‌دشاملیدو شرط دادی چې داوطلبان باید دپوره اعتماد وړوي او دکور دکار کړینې په‌چاروکې پوره مهارت واري

داورژانس‌دیوې مور دپاره په هفته کې سل مارکه‌حق‌الزحمه‌تاکل‌شوی ده .

دښاغلي انورزي ژباړه

دد پاندنیو منابعو نه

د درهٔ نورو الژباړه

# دنړۍ د لویو آبشارو لوړوالی څومره دی؟



اوریدلی به مووی چی د نړۍ لوی آبشار د امریکا د نیاګارا آبشار دی. که د نیاګارا آبشار د نړۍ د نورو آبشارو سره د لوړوالی په نسبت مقایسه کړو څرګنده به شی چی د نیاګارا آبشار نه پر ته او لس لوی آبشارونه نور هم شته

د نړۍ مهم ابشارونه :-

| د آبشار نوم | موقعیت | لوړوالی په متر |
|---|---|---|
| آنجل | د جنوبی امریکا په وینز ویلا کی | لوړوالی ۹۷۸ متره |
| ګریت فالس | د جنوبی امریکا په لابرادو کی | لوړوالی ۶۱۰ متره |
| سوترلینډ | د اوقیانوسیه په نیوز لانډ کی | لوړوالی ۵۷۹ متره |
| یوزمیت | د شمالی امریکا په کالیفورنیا کی | لوړوالی ۴۹۰ متره |
| کاورنی | په فرانسه کی | لوړوالی ۴۲۱ متره |
| مسیویلو | د افریقا په تانګانیکا کی | لوړوالی ۳۸۹ متره |
| لونوی | د افریقا په کانګو کی | لوړوالی ۳۸۴ متره |
| تاکاکاو | د جنوبی امریکا په کولمبیا کی | لوړوالی ۳۶۶ متره |
| مستوباچ | د اروپا په سویس کی | لوړوالی ۳۰۵ متره |
| دیوکان | د اروپا په ناروی کی | لوړوالی ۲۷۱ متره |
| کایتر | د جنوبی امریکا په کویمان کی | لوړوالی ۲۴۷ متره |
| مارمور | په اروپا کی د ایټالیا | لوړوالی ۱۶۵ متره |
| استرلینګ | د اوقیانوسیه په نیوزیلانډ کی | لوړوالی ۱۵۴ متره |
| یلستونی | د شمالی امریکا په مونتانای کی | لوړوالی ۱۳۳ متره |
| ویکتوریا | د افریقا په رامبز کی | لوړوالی ۱۳۳ متره |
| مورکیترون | د افریقا په اوګاندا کی | لوړوالی ۱۳۳ متره |

د درهٔ زنګ آبشار چی زموږ د ګران هیواد د فاریاب د ولایت د بلچراغ د ولسوالی د ګرزیوان په درهٔ زنګ کی لوړوالی ۱۲۰ متره

| | | |
|---|---|---|
| یګوازو | د جنوبی امریکا په برازیل کی | لوړوالی ۶۴ متره |
| نیاګارا | په شمالی امریکا کی | لوړوالی ۴۹ متره |
| شانهوز | د اروپا په سویس کی | لوړوالی ۴۱ متره |

ادبي اثر

# نقاش ته



کله چې دې کاغذ و مخ ته ایږدې او قلم په خپلو هنرمندو ګوتو کې نیسې او د هغه چا چهره چې ښوزله انسانان له ځانه لیري بولي نقاشي کوې نو په هغه خپله واقعي بڼه ئې نقاشي کړه غوټه غوټه تندې ئې وریځې اوصاف قهرجنې سترګې ئې ښایستې او هغه غاښونه چې د نورو وېرولو ته ئې سره چیچلي وي ښایسته مه رسموه .

هغه سر چې ناتوانو ته ئې جګ نیولي او مقتدر و ته ئې کښته ځړولي وي ښه مه ښیسوه، مغروري ئې په سپین مخې مه راښکاره کوه!

ستا همیشه دا قاعده وي چې متعرض لاسونه او متعرضه خوله او بالاخره ګنهکاره قیافه دې پره مؤذونه او ښکلې نقاشي کوې .

نو که هرڅوک په هاخپله واقعي چهره او واقعي شکل را او ویني ددې نتیجه به داوي چې موږ به هرڅوک په خپله بڼه پېژندلي وي او تا به هم هرڅوک یو واقعي او حق بین نقاش بولي .

نوري هم هرڅه په خپله حقیقي قیافه غواړي او بیا ئې ستا په هاخپل عین شکل ښکاره کوي .

ته هم ستا ته وګوره او خپل عمل دې د ستا په هنداره کې لیدلای سې . د ستا هنداره یعنې څه ؟

د ستا هنداره یعنې [خپل عمل د لاري مل]

«[ویران]»



د ولایاتو د اطلاعاتو مدیران په وروستي مطبوعاتي سیمینار کې
د کابل د دولتي مطابعو د عصري ودانۍ په مخ کې د دولتي مطابعو د
رئیس ښاغلي محمد ابراهیم کندهاري سره لیدل کیږي

د کابل دولتي مطبعه چې د چاپ په ټولو عصري وسایلو مجهزه
ده سربیره پر دوزیات شمیر جریدو، مجلو، ورځپاڼو،
رسمي ادارو، مؤسسو او انفرادي کسانو هر ډول
فرمایشونه اوددي کار په اړخ کې په
ملیونو کتابونه نو رهم په کښي چاپیږي

**د کندهار دولتي مطبعه**